# د اسلامي نړۍ پر وړاندې د امریکا د دسیسو یو وړه بیلګه

# مدني ډموکرات (امریکایي) اسلام

# Civil Democrat Islam

د کتاب ژباړه او لنډیز په ۲ پاڼو کې

مولف: "چیرل بنارډ" ( Cheryl Benard ) د زلمي خلیل زاد میرمن

کال: ۲۰۰۳

د کتاب/تحقیق مالي مرسته: د امریکا د ( ملي امنیت د تحقیقاتو نظامي فرقه ) او د "سمِت ریچارډسن" په امریکا کې د خارجه او کورنیو پالیسیو تحقیقاتي بنسټ (Smith Richardson Foundation ) له لورې.

بسم الله الرحمن الرحيم

وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ؕ— قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ؕ— وَلَىِٕنِ اتَّبَعْتَ
اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ الَّذِىْ جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ— مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۟۱۲۰ سورة البقرة: آية ۱۲۰

او له تا نه به هېڅکله نه یهودیان راضي شی، او نه نصرانیان، تر دې چې ته د دوی د دین پیروي وکړې، ته ووایه: بېشکه د الله هدایت، هُم هغه (اصل) هدایت دی، او یقینًا که تا، له دې نه پس چې تا ته علم راغی، د هغوی د خواهشاتو پیروي وکړه، (نو) تا لره د الله (له عذاب) نه (خلاصوونکی) نه څوك دوست شته او نه کوم مددګار. سورة البقرة: آیة: ۱۲۰

د بعضو اصطلاحاتو معنی:

1. بنسټ پال ( یعني هغه مسلمانان چې د الله متعال او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم پرته د بل هیڅ چاه اطاعت نکوي )
2. سنتي مسلمانان ( هغه مسلمانان دي چې عقیده یې د اسلام او د اجدادو د دودونو نه تشکیل شوې ده، یعني د اسلام سربیره عقیده یې د غیر اسلامي باورونو نه هم متاثر ده ).
3. نوی ګرایان یا (Modernists) ( هغه تش په نوم مســلمانان دي چې د میانه روي تر عنوان لاندې الهي احکام د خپل نفس د خوښې مطابق تفسیروي او د کفارو سره پر دین هر ډول معاملې ته چمتو دي).
4. ســـیکولر ( هغه طبقه ده کله چې واک یا حکومت یې په لاس کې نوي نو هڅه کوي چې خلکو ته دا ذهنیت ورکړي چې ګواکي دین نباید د ژوند په اکثره چارو، خاصـــتاً ســـیاســـت کې دخیل وي، او په دې مرحله کې دوی دین تنها د جومات تر محرابه محدودول غواړي او که چیرې اقتدار ته ورسیږي نو د دین بشپړ محو کولو ته لاس اچوي. د یادونې وړ ده چې دوی په اصل کې لادین یا (Atheists) دي.

د ډموکرات ( امریکایي ) اسلام (Civil Democrat Islam) کتاب ژباړه او لنډیز په لاندې 2 پاڼو کې

د زلمی خلیل زاد میرمن "چیرل بنارډ" (Cheryl Benard) چې په اصـــــل کې یهوده ده، په خپل کتاب (Civil Democrat Islam) کې لیکي، اسـلام یو داسـې دین دی چې موږ ناچاره یو مګر دا چې په یو ډول ورسـره ژوند مخته یوسو (یعني له مینځه وړل یې ممکن ندي) خو البته پر یو داسې نوع اسلام کار وشي چې هغه د ډموکراتیک او غربي نړۍ د ارزښتونو او قوانینو اطاعت کونکی وي.

هغې لیکي: چې مسلمانان په 4 برخو ویشل شوي:

1. بنســټ پال یا د ( غرب په اصــطلاح Fundamentalists ) چې ابداً زموږ ارزښــتونه نمي او غرب، خاصتاً امریکا ته دښمنانه ستراتیژي لري.
2. سنتي مسلمانان (یعني کلیوال مسلمانان) چې تابع کول یې پس له یو څه ستونزو امکان لري.
3. نوی پال/موډرنســـټان ( Modernists ) هغه طبقه چې د غرب ســـره تعامل غواړي او په ډموکراتیک ارزښتونو باورمند دي.
4. ســـیکولره طبقه چې دین له ســـیاســـت او د ژوند ډیرو برخو نه جلا کول غواړي او موږ ته تر ټولو نیږدې خلک 4 او 3 طبقه ده.

هغه زیاتوي، موږ باید په اسلامي نړۍ کې د همدې طبقاتو ملاتړ وکړو، سنتي طبقه پر مختګ او تغییر نخوښوي خو بنسټ پال بیا خپلو موخو ته د رسـیدلو لپاره د نوښـت او ټکنالوژي پلاویان دي. او دا چې د سـنتي مسـلمانانو عقیده د اسـلام او د هغوی د اجدادو یا هم د منطقي د دودونو پر بنسټ بنا ده.

هغه لیکي، نوګرایان/موډرنسـټان په اسـلام کې د میانه روي تر عنوان لاندې او له سـره د اسـلامي مفاهیمو په تعریف کې مؤثر دي، هغه زیاتوي چې موږ باید د نو ګرایانو د دیني علماوو د لیکنو، ویناوو او نظریاتو سخت ملاتړ وکړو او دا چې د نشراتو مصارف یې پره غاړه واخلو.

د نوی ګرایانو او سـیکولر طبقې تر مینځ باید ډیره همکاري را مینځ ته کړو او سـنتي ( کلیواله ) طبقه د بناید ګراه/بنسـټ پالو سره په اختلافاتو وهڅو تر څو سنتي ( کلیوال ) مسلمانان بنسټ پال په تندروي تورن کړي. هغه وایي سنتي ( کلیواله ) طبقه زموږ لپاره ګواښ نده. په دې ارتباط د ژباړونکي شـــرح: یعني د ســـنتي ( کلیوال ) مســـلمانانو فاســـدول لګ وخت غواړي خو نا ممکنه نده. ځکه په اسلام کې چې د اجدادو خبرې ور ګډې شي نو خپل ماهیت له لاسه وکوي. که د چا نه د حق ډله ورکه وي نو کولی شـي چې د کفارو له نظره یې وموندي. د یادونې وړ ده چې د غرب/کفار بنسـټ پال هغه چا ته وایي چې د هغوی د عقیدې بنسټ په قرآن او احادیثو بنا وي او د عقیدې پر سر د کفارو سره هیڅ ډول معامله نکوي او نه هم په اسلام کې هیڅ ډول تغییر مني.

هغه وایي موږ باید په اسـلامی نړۍ کې تصـوف یا صـوفییزم ته وده وکړو. ( د مترجم تصـبره: دا خپله د تصـوف د بطلان لویه نښه ده، چې حتی کفار یې د اسلام د تضعیف لپاره د حل لار په ډول مطرح کوي.

"چیرل بنارډ" لیکي، نوی ګرایان زموږ لپاره په اسـلامي نړۍ کې د ډموکراسـې د خپرولو لپاره ښـه وسـیله ده موږ باید د هغوی لیکني د اسـلام په له سـره ترجمه کولو وسـتایو او ملاتړ یې وکړو هغوی که څه هم په ټولنه کې ضـعیف موقف لري خو کولوی شو چې هغوی ته د شهرت په ذریعه روحیه ورکړو. هغې په خپل کتاب کې د بعضو نوی ګراه علماو نومونه په ذکر او ستاینه یې کړې لکه : مصطفی "سیریش" د بوسنیا مفتي اعظم، خالد ابو الفضل، یوسف القرضاوي، فتح الله ګولن.
هغه لیکي چې د عصـري یا نوی ګرایي د اصـولو پر بنا اسـلام، یوازینی هغه ډول د اسـلام دی چې د غرب د ارزښـتونو اطاعت کولی شي.

هغه زياتوي، سـنتي ( كليوال ) مسلمانان د غرب لپاره تهديد ندي، ځکه هغوی د منطقي او اجدادو د کلتور نه متاثره دي نه تنها د اسلام نه، او زياتوي چې د تصوف يا صوفييزم بايد ډير ملاتړ وکړو او په تعليمي نصاب کې يې د اشعارو په ذريعه خپور کړو. هغه وايي صوفييزم د غير ديني اړخونو سره د يوه قوي پله په شان رول ادا کوي.

هغه ليکي موږ بايد نوی ګراه مسلمانانو ته وده ورکړو او هغوی د رسنيو له لارې لکه رهبران داسې مشهور کړو، خو دا نوی ګريان نبايد خلک په مصنوعي اسلام کې ډير ښکيل کړي. د ژباړونکي تبصره ( ځکه دا امر بيا په خلکو کې د "کفارو په اصطلاح" د تندروي يا ( Extremism ) چې په اصـل کې همدا واقعي اسـلام دی خو دوی يې په دې نومونو يادوی احتمال پيدا کوي ). هغه زياتوي: بلکه دوی بايد د داسې يو فکر سره آشـنا کړو چې ګواکې اسـلام تنها د دوی د هويت يوه وړه برخه ده.

هغه وايي: د متعهدو مسـلمان ځوانانو متاثره کول آسـانه کار ندی نو پکار ده چې د هغوی پر زدکړو ( يعني په سـيکولر علومو، د غربي فلسفي او نړی ليد په تبليغ ) ډير تمرکز وکړو او بايد د تعليمي نصاب له لارې د ډموکراتيک اسلام د پيغام په ذريعه پرې نفوذ تر لاسـه شـي. هغه زياتوي بنسـټ پال ( يعني واقعي ) مسـلمانان پر ځوانانو ډير نفوذ لري او هغوی په دې برخه کې ډير کار کړی. موږ بايد ورته تکاليف او زحمات و ګالو تر څو په نوي نسل کې عين موقف تر لاسه کړو خو دا کار به په آسانی تر سره نشي ځکه ډير کار او زيار غواړي تر څو موږ د پښو ځای پکښې پيدا کړو.

هغه ليکي: په کار ده چې د نوی پال ( د جمهور علماو په اند: موډرنستان تش په نوم مسلمانان چې په حقيقت کې د اسلام د دايرې نه وتلي دي ) او د سيکولرانو د ليکنو کلک ملاتړ وشي، تر څو د هغوی نظريات په ټولنه کې وده وکړي، او د دوی په ذريعه د بنسټ پالو مسلمانانو د اسلام تفسير د سوال او ننګونو سره مخ شي.

په اسلامي نړۍ کې ځوانانو ته بايد د رسنيو او تعليمی اسبابو په ذريعه له اسلام نه د مخکې يا غير اسلامي تاريخ او کلتور په هکله پوهاوی ورکړل شـي. او په عين حال کې اړينه ده چې د سـيکولر مدني او کلتوري موسـسـؤ او پرګرامونو تشـويق او مالي ملاتړ وکړو.

هغه ليکي: بنسټپال مسلمانان بايد ټولنې ته داسې ور معرفي کړو چې ګواکې دوی د ملک د پر مختګ او حکومتداري وړتيا نلري. د مترجم تبصره ( حال دا چې حکومتداري د اسلام يوه لويه برخه ده او رسول صلی الله عليه وسلم د اسلامي دولت لومړنی رئيس ؤ ) خو د کفارو ډير تمرکز د اسلام او سياست پر جدايي دی.

هغه زياتوي د بنسټپالو په هکله د منفي تبليغاتو د رسولو هدف بايد ځوانان، با تقوي سنتي ( کليوال مسلمانان)، په غرب کې ميشـت اقليت مسـلمانان او ښـځې وي. تر ډيره حده بايد هڅه وشـي تر څو د بنسـټپالو ( مجاهدينو ) د احترام مخه ونيسـو او هغوی بايد د رواني مريضانو په شان معرفي شي نه لکه د جنګ د اتلانو په شان.

هغه ليکي خبريالان بايد وهڅول شـي تر څو د بنسـټپالو عيوب او په هغوی کې د فحشـا او فسـاد خبرونه پيدا کړي. ټولنې ته دا ذهنيت بايد ورکړل شي چې ګواکې بنسټپال مسلمانان زموږ او د هغوی ګډ دښمنان دي او دا چې دين او سياست بېلېدلی شي او دا امر د دوی دين په خطر کې نه واقع کوي.

الله متعال فرمايي

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ— فَسَيُنْفِقُوْنَهَا ثُمَّ تَكُوْنُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُوْنَ ؕ۬— وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اِلٰى جَهَنَّمَ يُحْشَرُوْنَ ۙ۳۶ سورة الانفال: آية ۳۶

بېشکه هغه کسان چې کفر يې کړی دی، دوی خپل مالونه د دې لپاره لګوي چې د الله له لارې نه (خلک) منع کړي، نو ژر به دوی دا (مالونه) ولګوي، بيا به دغه کار د دوی لپاره (د) حسرت (او پښېمانتيا باعث) شي، بيا به دوی مغلوب کړی شي او هغه کسان چې کفر يې کړی دی، هغوی به د جهنم په لور ور جمع کړل شي. سورة الانفال: آية ۳۶

لهذا د مسلمانانو نه مو هيله دا ده چې خپل دښمنان وپېژنئ او پام مو وي چې د هغوی د دسيسو ښکار نشئ.

په دين ځان او خپله کورنۍ پوه کړئ د کفار پر وړاندې په هر ډګر کې مبارزه وکړئ او دا مبارزه به د ژوند تر پايه جاري ساتئ، ځکه کفار د اسلام د دښمنۍ نه، لاس نه اخلي او نه هم تاسو خپلې مخې ته په کرار پرېږدي.

اللّٰهمّ صَلِّ وسلّم وبارك عَلى **سيّدنا** مُحَمَّد وآله وصحبه أجمعين

و آخر دعوانا أَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعالَمِين

